Kandahar. Kabul
Vol.11, No.4, Sartan 1349
(June 1970)



# کندهار



د کندز په ولایت کې د همایوني معظم اعلیحضرت د دوروستي سفر له خاطراتو
څخه په هغه وخت کې چې شاهانه ذات د بلقیس د لیسې څخه لیدنه کوي

اوسنی ادب — ښاغلی نظری

# ښکلی مرغۍ ته

ای خلکو ددې ځای په لیری او چپ شی ای غمازه خدای ته وګوره ولاړ سه
ما پرېږده چې زما د زړه مرغۍ ونه بېرېږي .
هو دا مرغۍ حسینه نده خو بېرژوند بېرېږي او په سپک حرکت او ږغ
الوزي .

آ، مرغۍ دلته آرامی ده ... پام کوه
ته ئې خپلی اصلی او حقیقی مینی ته راغلی ئې .
مه ځه آ مرغۍ! ... مه ځه آ مرغۍ!.

پرېږده چې خپلی هیلی او آرزوګانی درته بیان کم
ای مرغۍ! زموږ په کورکی خپله ځالی جوړه کړه .
تا ته به آرامی وی دیخ او ګرمۍ ځخه به په امان سې .

نو مه ځه آ! مرغۍ . مه ځه آ مرغۍ! .
آ مرغۍ .. زه ظالم نه یم ځکه چې ظلم می بدایسی .
نو زما سوری سوری زړه ته د صیاد دام مه وایه .

دا ارمانجن زړه دی چې ستا د فراق ځخه پدې ډول شویدی .
زه ستا قدر ډیر زیات لرم او ته می زړه ته نژدې یې .
نو آ مرغۍ مه ځه! ... آ مرغۍ مه ځه! .
ای ښکلی مرغۍ زما ځخه لیری الوتنی مه کوه .

زه بې رحمه صیاد او ظالم ښکاری نه یم، زما ځخه مه بېرېږه .
زه ولی تا ته نا بلده ښکاریږم ماخو ته د ډیری پخوا ځخه پیژندلی
زه په تا پسی هڅه کوم چې تا د خپلی کوډلی واکمنه کړم او د خپل

اناری زړه توتی ستا د تاج یاقوتان کم .
نو آ مرغۍ مه ځه! . آ مرغۍ مه ځه! .



صدر اعظم ښاغلي نور احمد اعتمادي د هيواد شمالي ولايتونو ته په خپل وروستي سفر کي کله چي
د شبرغان د نفتو د پنځمي ذخيري څخه ليدنه کتنه کوي .

د امتیاز خاوند : د طلوع افغان نشراتي مؤسسه
مسئول مدیر: زلمی (بارک)

کندهار

میاشتنۍ خپرونه

ادبي ، تاریخي ، اجتماعي ، علمي

اداره: د شهیدانو واټ

د تاسیس کال ۱۳۳۹
د یوولسم کال څلرمه ګڼه
پر له پسې ګڼه ۱۱۸

کالنۍ بیه

په کندهار کې [۲۸] افغانۍ

د هیواد په داخل کې [۳۲]،

په د باندنیو هیوادو کې یو پاؤنډ

د چونګابښ میاشت
۱۳۴۹ لمریز کال

# ددې ګڼې مضامین



د کندهار دولتي مطبعه

# د انسانانو ژوند د سمون او پرمختګ په حال کښې دی

سمون او پرمختګ د انسانانو سره لازم او د انساني لوړ فکر، معنوي قواؤ او طبيعي ذهني استعداد د تلاښ نتيجه او د انساني فضيلت او بشري کرامت نمونه او بشپړ کوونکې ده.

د بشر عالي طبيعت، مدني خوی، عقلي او فکري قوت تل تر تله انسانان دې ته وا داره کوي چې فردي او اجتماعي حالت ئې د ارتقا پر لور بدلون ومومي او ژوند ئې د عصريت سره برابر او ټيا وي يې ليري او د ژوند له عالي هدف ته ور سيږي او لوئې هيلې يې ترسره شي.

انسانانو ته پاک خدای لوړ استعداد ور کړی دی او هغوی کولای شي چې که د سمون او ارتقا لارې ولټوي، پر سمه لار ولاړ شي او هغه عوامل په کار واچوي چې په هغو سره پرمختللي کسانو بري حاصل کړی او خپل محيط، ټولنه او هيواد ئې د بد بختيو اجتماعي پريشانيو او هر راز آفتو نو څخه ساتلي دي نو شک نشته چې د غسې ټولنه او دا راز د مترقي فکر او اصلاحي نظر يې خاوندان ژر تر ژره لوړيږي او سم ور سره خپل اجتماعي او ملي ژوند هم لوړ وي او د ارتقا څخه پوره ګټه او نتيجه اخلي.

خو هر هغه وخت چې د غه انسان چې تار ئې په نړۍ کې څو زره کلن مدنيتونه ثبت کړي او موږ ئې اوس هم د ستر و مادي او معنوي انکشافاتو، ساينسي او تخنيکي پرمختګونو شاهديو د نا پوهۍ په تياره کې پاته شوی، لوړ و مدني خويونو او مترقي افکارو ته ئې شا ور ګرزولې. ژوند ئې د فعاليت، کوښښ مجاهدې او مبارزې په عوض کې په لټۍ، عياشي خود خواهي او ځانځانۍ په چټي خيالاتو تير شوی او زياتو خلکو ئې فسادونو او يو د بل د پښو اچولو ته ملا تړلې ده نو بيا هغوی هم ترشا پاته او تيت شوي او د خوارۍ او پريشانۍ سره مخامخ شوي دي، او تر څو پورې چې خپل د غه وران حالت ئې نه دی بدل کړی، او ارتقا ئې پلانو نه ئې نه دي عملي کړي تر هغو پورې په خپل زاړه حالت پاته شوي، فردي او اجتماعي ژوند ئې هم ورځ په ورځ خراب شوی دی.

د سمون او ارتقا پر لور تلاښ د يوه ژوندي وينښ او غيرتمن ولس خاصه او د هغو خلکو د پوهې تنوير او لوړو اخلاقو نمونه ده او د انساني بشري افراد او ولسونه ضرور لوړيږي چې د پرمختګ عزم و کړي او د خپلو هيوادو و ګړو او د خپلو ټولنو مادي او معنوي پرمختګ ته ملا و تړي او په خپل د غه ستر کار او لوړ هدف کې ټوله په ګډه زيار و باسي او پرځانونو ستړياوې راولي..

په تيره بيا په اوسني پرمختللي زمانه او نيک مرغه عصر کې چې اوسني ساينس او تخنيک نړۍ سره نژدې کړې او د انسانانو ترمنځ ئې نژدې ارتباط ټينګ کړی او حتی ترشا پاته ټولنې د مترقي هيوادونو ورځني تحولات هر ډول مادي او معنوي پرمختګونه او انکشافات په خپلو سترګو ويني او ياد هغو خبرونه په راډيوګانو کې اوري او يا يې په ورځپاڼو

[نور په دوهم مخ کې]

[د لومړی مخ پاته]

## دانسانانو ژوند . . .

او مطبوعاتو کی لولی نو په دغسی حالت کی هیڅ امکان نه لری چی دشاپاته انسانان دی ددغه حالت څخه عبرت وانه خلی او دهغو په څیر دی په خپل ژوندکی اصلاحات ونه کړی او دپرمختګ لاری چاری دی ونه لټوی دخوښی ځای دادئ چی اوس زموږ پرهیواد هم دار تقا او سمون دوره راغلی ده اوس زموږ دژوند په ټولو برخو کښی پوزیات شمیر ارتقایی پروژی او اصلاحی پلانونه د بشپړیدو په حال کی دی نو په دغسی یوښه حالت او حساس موقعیت کی زموږ ټولو خلکو ته په کار ده چی دهیواد په دغو انکشافاتو او اصلاحاتو کی برخه واخلی په خپلو ملی او اجتماعی چارو کی د هیواد په ګټه او د عمومی مصالحو په ټینګولو کی ګډون وکړی راسی چی په ګډه خپل ملی پرمختګ او دولس سمون ته پاملرنه واړوو درځی چی د هیواد دخدمت او ټولنی د اجتماعی چوپړ دلاری خپل ملی مسئولیتونه لیری او هیواد دمادی او معنوی لحاظه پرپښو ودرو او په نتیجه کی پدی ډول موږ داوسنی پرمختګ څخه پوره ګټه واخلو .

ش علی ایوبی

پراد بیاتو یوه کره کتنه — لیکونکی ، م عطائی

# دهنر په وحشی کیدو کښی

## دسمبولیسم رول

د سمبو لیسم هنری مکتب د نونسمی پیړی سر پر له څرخوونکو جریاناتو وزیږاوه ، او د اجتماعی ګرداونو په مدوجزر کی یی دعروج او نزول مرحله پای ته ورسیده .

ځرنګه چی سمبول په لغوی معنی دیوشی عوض او قراردادی علامی ته ویل کیږی نو داهنری روش ته سمبو لیسم وایی .

دامکتب درومانتیزم د آجزیی سره له هغه څخه راوزیږی دی ، او هغه تښته او له اجتماع څخه انزوا

چی درومانتیک هنر مند اساسی تلن لاروه سمبو لیك هنرمند په څو چنده قوت دلفظ او معنی په لحاظ په پردو کی پر له وپیچله .

فرانسوی سمبولستانو د[احساساتو اصالت] په پیروی داسی یوه د اغراق لار واخیستله چی نه یوازی یی قراردادی او تعاملی سمبولونه پسی زیات کړه بلکه د شاعر د روحی او نفسیاتی کیفیاتو اظهار یی ونا پیژندونکو اشاراتو ته تسلیم کړ .

په قرار دادی او تعاملی تشبیهاتو کی د ګلاب سرخی د ښکلی پیغلی له شونډو سره تشبیه کیږی او دسپوږمی سره یی دمخ سپینوالی او ښاشت سمبول کیږی خو په دغه هنری دوره کی د مسایلو شکل واوښت او هرڅه چی وه د یوه لیونی شاعر د احساساتو تابع شوه او ددې احساساتو د اظهار کلمات

هم هغه اشارات وه چی یوازی پخپله شاعر په پوهیدی نولسمه پیړه کی چی دنړی سیاسی او اجتماعی وضع دلوی بدلون په غیږ کښیوتی وه اروپایی هنرمند دیوشړل شوی ، فراری اود یو جامدی کرختی دنیا داری په غلامی راګیر انسان حیثیت درلود .

دده حساس او ځیرك تخیل د یو نوی مرئیتوب څخه په تښته او شکست د و نه وحشی شو چې حتی خپل ځان یې هم ورك کړ .

ددې هنری مکتب په مؤسسینو کی (شارل بودلر) دواقعبینی او واقعیت پالنی په مخالفت په لوړ آواز ناری کړه چې « د واقعیتونو توصیف او تصویر دسمبو- لیستانو کار نه دی بلکه دا کار په بلزیکیانو او د یوو کرانانو پوری اړه لری)

ددې مکتب له متفکرو مغزو څخه یو سړی چې د (کلماتو جادو) ته په خاص ارزښت قایل شوی دی وایی «یو بی معنی عبارت چې ښکلا ولری په مرا تبو تر هغه عبارت ښه دی چې زیبایی ونلری او واقعیت وی »

په سمبولیسم کی دانسان فکر او اندېښنه د واقعیت او منطق اساس نه دی بلکه واقعیتونه باید د احساس او تخیل پر پایو ودریږی .

هغه مهال چې د سمبولیسم د مکتب د پیرو شاعر په چار ښاخه د طبیعت خوا ته بادی شروع وه نو نړی بیا هم واقعیتونه نه سره پر له پېچلی بلکه

واقعیت پالونکی تا بلو وګورو او هلته د او ینو چې د چو ګنښی د پښو پردی د یوی پیغلې له تیو سره تشبیه شوی وی نو دا باید موږ ته تعجب پیدا نکړی بلکه دا د هغه د هنری شاهکار دی .

په مجسمه سازی، موسیقی او هر لطیف هنر و کی دا کار عملی بڼه لری. په شعر او لیکلی ادب کی هم دا کار یو هنر و او نو دا وجه ده چې نن هر څوك د دغو سمبولیکو آثارو په لیدو نه یوازې د هغه سره الفت نه پیدا کوی بلکه نفرت ځینی کوی .

د یوه سمبولیك شعر نمونه

(د شاعر: شارل بودلر اثر)

## ( پردی )

آمر موز سړیه ! څوك دیر در باندی ګران دی؟ پلار؟ مور؟ ورور؟ او که خور؟

« نه پلار! نه مور! نه ورور! نه خور!»

خپلوان دی څوك دی ؟

«تاسی داسی خبری کوی! چې د هغه معنی تر اوسه ما ته مجهوله ده»

«وطن دی چېری دی ؟ »

نه په پوهیږم چې چېری دی!

«د ښکلا سره څنګه یې؟»

«د میل له مخی د هغه جاویدانی موجود سره علاقه لرم: »

«د طلا سره څنګه یې ؟

«د هغه څخه می بد راځی :»

« آه: نو د څه شی سره علاقه لرې آ پردی سړیه ؟»

اوریځی وا باندی ګرانی دی؛ ... هغه اوریځی چې د روهی: ... هلته اوریځی .. تعجب پاڅونکی اوریځی : ...

په کامل متانت دا منظره لیده او ورو ورو د واقعیت پالنی مکتب داسر پر له ځرخونکی جریان په ځان کی منحلاوه څو دادی نن هغه هنری لیونتوب خپل ځای کاملا" خوشی کړی خو په ادبی آواریخو کی یې مو ږ لیونی زمزمه او آهنګ نسو هیرولای .

ځرنګه چې یورپ لکه په نورو جریانا تو کی چې هر څه ساتی نو په دغه هنری مکتب پوری مربوطې هم آثار په ننداراتو او ګیلریو کی ساتل شویدی

# د ځوان لیکوال مسئولیت

دهرې ټولنې پرمختګ، وروسته پاته والی، رفاه او دربدري دهغې ټولنې د افرادو دفکر او ذهنیت سره اړیکې لري .

انسانان کوښښ کوي چې دخپل فکر او ذهنیت په چوکاټ کې دننه یوه ټولنه جوړه کړي بدې صورت کې د هرې جامعې ځړي ذهني تکامل ته رسیدلی وي او

فکریې انکشاف کړی وي ښکاره خبره ده چې دهغې ټولنې دژوندانه طرز او ډول به مترقي او پرمخ تللی وي .

په لنډ ډول د اجتماعي سیستمونو د جوړیدو ډول په هره ټولنه کې د افرادو

دذهنیت او طرز تفکر محصول ګڼل کیدای شي .

روښانه حقیقت دی چې یو مترقي انسان د خپل مترقي ذهنیت او فکر په رڼا کې مثبت ګام اخلي او برعکس بې علمه کسان همیشه د منفي حوادثو

ستر او مؤثر عامل وي نو ددې لپاره چې په خصوصي ډول هرهیواد او په عمومي ترتیب انساني نړۍ د لوږې، ناروغۍ، فقر، بیکارۍ ، دربدرۍ، خونړیو جنګونو او نورو بشري مفاسدو څخه نجات

پیدا کې دا کار دیوې داسې اساسي مبارزې روی کارول ایجابوي چې اصل یې د بشري جوامعو د افکارو په روښانولو متکي وي .

دا مبارزه وانسانی آرامې نړۍ ته د رسیدلو مهم رکن دی او دهرې ټولنې مترقي روښنفکره لیکوالان ددې ستري بشري مبارزې

د بیرغ اوچتولو په لاره کې تاریخي مسئولیت لري .

موږ د تاریخ له حوادثو نه دا نتیجه اخلو چې په هره اندازه چې په بشري ټولنو کښې دغه ستره انساني مبارزه د خپلو اصولو او قوانینو په ساحه کې دننه تعقیب شوې ده دهغه اجتماع دژوندانه قاموس څخه دلوږې، ناروغۍ بیکارۍ او نورو اجتماعي مفسداتو او فلاکتونو ناوړه کلمات لیرې شویدي .

خو دا ستره مبارزه تر ټولو یه کامیابۍ پوره ایثار او فداکارۍ ته اړه لري چې دا فداکاري بیا هم د حساسو ملي لیکوالانو تاریخي وظیفه ده .

چه د فداکاره لیکوالانو ایثار دا ایجابوي چې د دغه سیلاب څخه څرنګه دخپل مغزو سو څملو او دزړه دوینو په خوړلو سره د وطنوالو د صحي ژوند د تأمین په لاره کښې د اجتماعي مصالحو پر اساس برخه واخلي .

«او و پـه ۵ مخ کې»

موږ په تاریخ ایمان لرو او د هری تاریخي پدیدی ځخه پند اخلو تاریخ موږ ته دا درس راکوی چې د هر قوم او ملت پوهانو او د قلم خاوندانو چې د خپلو شخصي اغراضو مخ ته بیولو ملي منافعو د نه په نظر کې نیولو او د خپلو منافعو د ساتلو له کبله په حقایقو پرده اچولی، ده هغه هیواد د آرامی او هوسایی مخه نه ده لیدلی وایی:

(د حقیقت اظهار تریخ دی مګر ثمر یې ډیر خوږ دی]٠

که یو ځوان لیکوال په پوره اصل ایمان ولری او د خپل وطن په وړاندی د فداکاری او ایثار روحیه پخپل ځان کې تثبیت کړی شك نشته چې دا لیکوال خپله تاریخي وظیفه سرته رسولی ده ٠

زه موږ ویرو هیواد والو ته دا سوال په مخ کښی پروت دی (ولی عوتر او سه دنبه پوره بشری استعداد او طبیعی شیګنتیا سره سره یوه دوې نه شوی ؟...د دنیا نور ولسونه سپوږمۍ ته ورسیدل مګر موږ تر او سه غلمینی ډوډۍ ته احتیاج یو؟ !

زه شخصاً پوره ته خبرو د تحلیل په رڼا کې داسی جواب ورکوم ٠

ای د ځوان فکر او قلم خاونده ٠ ستا وظیفه ډیره درنه ده !

ځکه ستا لوی مسئولیت او درنه وظیفه هر ډول ربړ او تکلیف ایجا بوی ـ مګر پدی هم وپوهیږه چې د خپلی وظیفی په سرته رسولو سره د تاریخ په ځلاندو صفحو کې د سرلوړی لقب ګټې ٠

«[فریاد عطائی]»

د رابیندرانات ټاګور اثر — د عمرزی ژباړه:

## ډیوه

دیوه آرام رود پرغاړه می د جګو او ګڼو بوټو په منځ کې ورته وویل :

ځوانی نجلۍ! دا ډیوه چې تر پوړنۍ لاندی دی نیولی ده چیری ئې وړې ؟

زما خونه خالی او تاریکه ده ډیوه دی ما ته په پور را که، خپلی توری سترګی ئې را پورته کړی زما و خوا ته ئې متوجه ٠ کړی او دا ئې راته وویل :

راغلی یم کله چې د لمر وړانګې د غرب په افق کې پټې سی زما ډیوه به د رود د او بو پر مخ لمبې و کی....

زه پدی جګو بوټو او شنو وښو کې یوازی ولاړ وم او د ډیوې لړزانه رڼا لی می بې بیهوده د او بو پر سر رهی وه کتله

٠٠٠٠

د شپې د سکوت په حال کې می بیا ورته وویل :

ځوانی نجلۍ! ته و له ډیوې بلی سوې نو ته د خپلی ډیوې سره چیری ځی زما خونه خالی او تاریکه ده ډیوه دی ما ته په پور را که توری سترګی ئې را واړولی او یو آن په چرت کې پاته سوه ورو سته ئې راته وویل : زه راغلی یم چې ډیوه و آسمان ته هدیه کړم ٠

وروړیدم او د دې ډیوه چې په فضا کې بې ضرور ته سوځل کیده تماشا می و کړه ٠

٠٠٠٠

که می کتل د دې وړو کې ډیوه په نورو ډیوو کې ور که سوه [هغه خونی چې تاریکی وې هغه هغسی تاریکی پاته سوی او د دې ډیوه به هر ځای بیهوده لګیدل ٠]

# د کندهار یو ښکلی بڼ

زه دسردې بڼ اود باباولی صاحب ددهلی بڼ اویا دارغنداو دزاړه ښاره په سروړه کوڅې بڼ کی یا منزل باغ اود ارغنداو نوری باغچې اوبڼونه یادوم، هو دغه بڼونه هم ځانله صفتونه او کیفیتونه او ښکلاوی لری او دهر یوه ځانله مقام اوموقعیت او کیفیت دی او بیل بیل ارزښتونه لری او زه هم ورته قائل یم خوزه بل بڼ یادوم چه د رنګار نګ ښکلو ګلانو اود رنګار نګ ژوو او مرغانو دلیدونه ورته یو دهغه باوقاره خنده رویه خوش اخلاقه اوخوش مزار خاوندانی چه ددغه بڼ زیبائی ئی لاوریسی ډیره کړی ده زه که د دغه شخصیت تعریف او توصیف هر څو مره وکړم په ارزی اولا به هم کم وی خو خبره به وکړه شی اوددرنولوستونکو تلوسه به داوی چه ژر ددې بڼ د نوم اونښان نه خبر شی ښه دادی وایم :-

دا ښکلی بڼ دسید عبدالرحمن شاه د کوڅې بڼ دی چه د ۞



ښاغلی سید عبدالرحمن شاه په خپل شخصی بڼ کی دروزل شوو ګلانو په منځ کی

✿ کندهار په نوي ښار کې په داؤد واټ کې واقع دی ددې ښې د شمال او غرب نه دوې لارې او دروازې دي او ټول پرانيټې دي او هيڅ پهره دار پکښې نشته او نه د کومې اجازه نامې ضرورت شته که چا کندهار ليدلی وي او د کندهار تاريخي او د ليدنې وړ ځايو نو اته ئې کړي وي هغوی به ضرور د آغا صاحب ښ هم ليدلی وي او هلته به ئې چای شربت، يو وړه ضرور نوش جان کړی وي او که دا نه وي نو د آغا صاحب نوم خو به ئې خامخا اوريدلی وي، په کندهار کې رښتيا چه اوس په دې نژدې زمانه کې هم ښه نامتو شخصيتونه چه د علم او فن قلم او شاعرۍ خاوندان وه او يا لکه د ښاغلي مرحوم موسی خان غوندې د ښې ځوانۍ او يا د مرحوم رئيس عطا جان غوندې د فياضۍ او مهمان نوازۍ او يا د غلام فاروق خان «کاکو» غوندې مهمان نوازۍ او صراحت لهجه ئې ډېر تير شوي دي چه رښتيا د غسې شخصيتونه د کندهار د ښار حقيقي ښکلا ګڼل کيدې شي، خو دا دی ښه دی سيد عبدالرحمن شاه لا اوس هم پکښې شته.

د افغانستان د بل ولايت يا د بل هيواد نه که څوك راسي نو دا د ليدو وړ ښې او د غه شخصيت چه ګوري ګمان به وکړي چه د کندهار د کر د خلك هم دومره مينه محبت او مهرباني لري.

سيد عبد الرحمن شاه د کندهار د ولس ښه نماينده ګی کولای شي.

د سيد عبدالرحمن شاه باغ ته چه کله ور ځې نو په غربي دروازه ور ننه سه:

هيڅوك هم مانع نشته چه په دروازه کې ور ننه شي نو د ګلانو يو يو بوټي په يو ديوالکې خور شوي دي او پدغه ديوال په يو جلي ښکلي قلم په پښتو داسې ليکل شوي دي:

(ښه راغلاست ګرانو ميلمنو)

چې لږ ور تاوسې نو به د ښکلي ښکو فرش په غوړيدلي ميداني او ښکلي په رجه جوړې لارې چه په سرو خښتو فرش دي در ښکاره شي او رنګ رنګ ګلان او رنګارنګ مرغان او ژوي به وګورې يا په حوض کې رنګارنګ مرغاوي او قو تړي ګرځي هغه پلو د شادوګي او هوسۍ او غرڅونه نيولي ډير حيوانات او مرغان شته يا د کوترو عجيبه قسمونه توري بلبلي چه ما چرته هم ساتلي نه وې ليدلي خو دلته شته دي.

دا مرغان پخپلو ځايو کې په ډير ناز و نعم ساتل کيږي.

آغا صاحب دا مرغان راګير کړي دي او دوی ازادي ئې ضرور ور صلب کړي ده.

خو ورسره ئې ډير په مزه خوندي کړي هم دي.

آغا صاحب د ځينو کسانو په شان نه دی چه د خپلو شيانو تر ټيه او پالنه نه کوي او خبر ئې نه اخلي اغاصاحب په خپلو مرغانو د ورځې څو واره ګرځي را ګرځي او هغو ته رنګارنګ خوراکونه ورکوي.

چاته دانې او چاته وابښه او چاته غوښه او ماهي ورکوي ښه ئې ماڼه او پټ ساتي او داسې پالنه ئې کوي چې څوك خپل بچي هم د غسې نه ساتلي او پاللي.

دې پلو چې وګوري يوه ښکلي کوټي په نظر کښي در ځي چې ډيري خونې او ګلخانې لري اکثره ئې د ګلانو نه ډکې دي.

اغاصاحب رنګارنګ او قسما قسم خارجي او داخلي ګلان لري.

شبو، پتونې، چهرې، ګلابونه، او نور بې شماره قسمونه ګلان لري.

ګلان خو به بل چيرته هم وي ځکه چې د

کندهار خلك اکثره د ګلو شوقیان هم دی اود کندهار آب او هوا د ګلو له پاره ډیره مساعده هم ده.

خو پـدا سـی ترتیـب او سـلیـقه چـې سید عبد الرحمن شاه آغا او د هغه ځامن ګلان روزی او ساتی یې د بل چا د وسه نه ده پوره او یوه مور هم په خپل بچی دومره پام نسی کولای.

آغا صاحب سره د خپلو ګلانو د روزی او لمر پوره خیال لری او ګلان د یخنی، ګرمی څخه ساتل کیږی.

البته د سرو ی او صنوبر ونی هم شته خو آغاصاحب هغه دومره سر لوړی ته نه دی پرینښی چې د چا د سره دی ور ته خولی ولویږی.

البته ښکلا یې ور ساتلی ده د باغ په منځ کی څو کی پرتی دی سړی چې ور داخل شی د جناب آغاصاحب او یا د هغه ځامنو یا نمسیانو او نورو خپلو له خوا استقبال کیږی اود میلمه ډیر ښه هر کلی کیږی که ګلان څوك ګوری د آغا صاحب د خپلو انو ځامنو له به ور سره وی او په ډیره ښه وجه به تشریح ور کوی او بیا چې میلمه د ګلو او حیوانا تو په لیدو موړ شو نو راځی په څو کویو کښیني او آغا صاحب پخپله د خپلو میلمنو مهما نداروی چای راځی او رنګا رنګ میوی چا کلیټو نه او قند ور سره وی او که څوك شربت څکی هم تیار وی.

د آغاصاحب بڼ اود یری ته ړندیان هم راځـی او شیخان هم غټان او لویان هم راځی او واړه ماشومان هم په چادر و کښی مخ پټی ښځی هم راځی اود نوی فیشن د آزاده ځوانی مخ لوڅی پیغلی هم، غرض هر څوك اود هر خیال او شکل خاوندان ور تـه بی قیده راتللی شی.

شتمن او غریب دواړه پـه هم هغه یوه دروازه راځی او ډیر ملنګان هم د خپل ګنډ او کچکول سره، اهل هنود اود موسیقی نوازندګان هم راځی او خوشاله تری ځی.

چای نمازو نه پراته دی که څوك لمونځ ګذاره وی لمونـځ کوی هم کیدای شی او که څوك چای چلم څکوی هم موجود شته دی ما دا یران، عراق او هند، پاکستان اود مملکت د ننه ځینی تفریح ګاوی او بڼونه هم لیدلی دی.

خو کـوم کیف او خـونـد چـې د سید عبدالرحمن شاه په بڼ کښی شته دی بل چر ته به ګمان نه کوم چې وی.

د آغاصاحب دا مزه دار ژوند د دغه کورنی د مینی محبت نه ډك اخلاص او الفت، مینه مدار اود هر چا سره مهربانی کول چې سړی و ګوری حیرانیږی.

دا مهمان نوازی او هر چا سره مینه او مهربانی کول چې هم به ګلان اود ښکلا نور مناظر ور ښئی او هم به د خپل سخاوت اثبات ور ته کوی زما په ګمان یو نادر غوندی به وی او دا د دغی بختوری کورنی په نصیب شوی ازلی برخه ده.

مبارك دی وی!!

آغاصاحب څومره چې د خپل اصلی سیادت و شتنی رنـګ ساتلی دی همد غومره ئی د افغانی او پښتنی کلچر صبغه هم خوندی کړی ده.

مو به دده دا حق ولولو او د یو لیکوال په حیث دا خپله وظیفه بـولـم چې د د غسی شخصیتو نو چې د خلکو د خوښی له پاره خپل ژوند وقف کوی باید شخصیت وساتل شی او خلکو ته ور وپیژاندل شی او تقدیر سی.

زما دا څو کرښی د سید عبدالرحمن شاه آغا د بڼ د لیدو نه د هغه تاثیراتو منظر کښی دی چه ما لو څه وخت هغه بڼ اود آغاصاحب عامه مهربانی لیدلی ده.

(سیال)

[هنر په څو کرښو کې] [پښتو کولنکی [تپاند]

# د هنر منداو هنر هدف

## شوپنهاور (د آلمان نامتو فیلسوف په ۱۷۸۸-۱۸۲۲ کی د هنر د هدف په باره کی وایی:

طبیعت په استثنا نی تو څه ځینی خلک چی د هغوی د نوع منظره زموږ ستایش او جذبه راپاروی دموږ ته عرضه کوی، د هنر خاصه موضوع داده چی غالباً پدې باره کی د طبیعت نقصونه جبران کړی او د هغه هدف دوجدانی تمایزاتو تسهیل دی چی غالباً بیله هنره د هغو دعهدی څخه نسوای وتلای.

هنر مندیو واسطه ده د طبیعت په منځ کی چی هغه ته وایی: [دغه دی هغه څه چی تاسی غوښتی دی چی پوره یی کړل او دغه دی هغه څه چی په هغه کی دی عیب په کار کړیدی] او لیدونکی چی هغه ته وایی: [ستا سترګی د هغه څه دفرق د کولو د پاره چی واقعاً په نړۍ کی جالب او ښکلی دی د لیدو قدرت نلری، زه خپلی سترګی وتا ته په پور درکوم وګوره] پدې واسطه سره دی چی هنر باید د هری ریښتی چی وی باید یو هدف او فقط یو هدف د خپل نظر منظور وګڼی او هغه د جاویدانی صورتو ښکارکول دی چی افرادیی فقط ناچیزه نمونی د هغه حسابل کیږی.

په دې وجه دی چی د معماری خاص منظور د دغو نیرومندو قواؤ اصلی جوهر ښکاره کول دی چی د مصالح د ثقل او مقاومت قوه بلل کیږی.

هر تزئین او سنګکار چی بی فائدی وی پدې مورد کښی د بدسلیقګی څخه حکایت کوی د باغبانی فن باید نباتاتو د نوعیت د جوهر طبیعت مشخص کړی.

یو مجسمه جوړونکی باید نه تغییر بدونکی صورتونه د ژوندیو حیوانا تو او انسانانو په هغو رویشو چی د هغو احساساتو او عواطفو په وجود راوړیدی ښکاره کړی.

ستاسی پدې موضوع سره تشبه هدف لری پداسی حال کی چی مناظر او رنګونه د خپل هنر د ښکاره کولو د پاره پکاروی.

د شعر متنوع صورتونه هم باید د دې حده څخه لوړ ولاړ شی او نه یوازی جسمانی انواع بلکه هر قسم طبایع احساسات او عواطف باید ښکاره کړی.

او هنر په معنی د لوړ هنر موسیقی ده.

دغه هنر نه باید دارادی تجلیلات ښکاره کړی اود ټولو د سترګو د پاره ئې ونیسی بلکه کولای شی او باید بخپله اراده په خفی ترین، غریزی ترین او عمیق ترین تمایلاتو باندی تشریح کړی.

[نور د په ۱۰ مخ کی]

# ۲۹۶ فلزی سکې د کندهار د نیش د علاقه داری

## ددرهٔ نورد کلی په یوه کروندهکی لاس ته راغلی



هغه فلزی سکی او لوښی چی د کندهار ددرهٔ نورد سیمی د یوې کروندی څخه لاس ته راغلی

په تیره میاشت کی ۲۹۶ فلزی سکی چی دپخوانی تاریخی دوری د پیژندنی نمونه ده، دخاکریز دولسوالی د نیش دعلاقه داری ددرهٔ نور په یوه کروندهکی لاس ته راغلی دی .

دخاکریز ولسوال ښاغلی عبدالحمید وویل :

سکی د ښاغلی حاجی گل [ایوبی] لخوا په داسی حال کی چی په خپله کروندهکی ئی د تعمیر چوپړ ولو د پاره مځکه کیندل پیدا شوی سیکی په یوه خاورین لوښی کی وې .

ښاغلی (ایوبی) دغه سکی د کندهار موزیم ته وبخښلی چی د مربوطو مقاماتو له خوا په ډیر تشکر سره ومنل شوې

د کندهار دموزیم یوې منبع وویل :

سکی د تاریخی مجهولو اشکالو او لیکنو درلودنکی دی چی د تاریخی خصوصیاتو د پیژندنی لپاره کابل ته لیږل کیږی .



ښاغلی حاجی گل ایوبی

منبع زیاته کړه چی ددرهٔ نورسیمه د کندهار د نیش دعلاقه داری د تاریخی سیمی په حیث شهرت لری او د کندهار تاریخی منابع ... هم د دغه خاکریز او مربوطه علاقو د ... دی

(ط)

د ۹ مخ پاته

### د هنرمند او هنر .....

په هنر کی نبوغ مسلماً د دې څخه عبارت دی چی په غریزی توگه سره د فرد نوع تر نقاب لاندی په یوه نگاه سره تمیز کړی او د هغه پټی ښکاره کړی .

او جوهر یی په مستقیم او سهلترین وسائلو په ښکاره او څلاند ډول وښیی .

هنر که هر څومره ساده تر وی بیا هم قوی تر او نیرومنده تر ده دی هر ډول ورانی او پیچیده گی چی بی فایدی وی د بی ذوقی او بدسلیقی څخه حکایت کوی

تجزیه او تحلیلونه چی معتدل قضاوت د هنرد واقعی ارزش د پاره میسر کوی د انسانی ژوند د هر ډول ممکنو رویشو د تشخیص لپاره لاره پرانیزی .

# په کندهار کی د بوټ

## جوړولو صنعت

بوټ سازي د کندهار دولایت یو دقدر وړ لاسي صنعت دی چی تقریباً د ۶۰ کولو راهیسی په کندهار کی رواج لری او زیات شهرت یی موندلی دی لومړی محل یی کسب کاران محدود او یوازی یی خو تنو کار کاوه

اما ځرنګه چی کرار کرار ودی کار ته دخلکو مراجعه ډیره او تقاضا یی زیاته سوه یعنی ډیرو خلکو په پښو کول او خوښ یی دراودل نو د کار کونکو شمیر یی زیات او اوس موږ وینو چی د کمیت او کیفیت په لحاظ لوړه درجه لری .

اوس شمیر تقریباً په اټکلی ډول وزرو تنو ته رسیږی دې بوټو سربیره پردې چی په کندهار کی یی خلک ډیر خوښوی په ټوله افغانستان کی ډیر شهرت لری لیکن اوس یی لیلامی بوټو انکشاف ته ځه صدمه ورسولی ده .

### د بوټ جوړولو نه

په کندهار کی ډول ډول بوټونه چی د پیلو پیلو ډولو نو پر اساس خاص نمونه لری چی موږ یی څو مشهور رقمونه دلته رانقلوو .

[۱] سلیپر .
[۲] نیم بوټی .
[۳] چنګکی
[۴] چوټه
[۵] چمپل
[۶] کواټی
[۷] دماسی بوټ
[۸] جلپوری

د بوټ د رنګ او ځرنګوالی انتخاب د فرمایش په لومړی سرکی پخپله په رانیو نکو پوری اړه لری .

### د کار مصاله

د بوټ جوړولو د پاره څرمن او نور لوازم یی لکه - نعل، آنهی (بندونه) او داسی نور سامان له خارجه ځخه راوارد یږی .

څرمن یی هم دوه ډوله ده

[۱] دانه داره .
[۲] ساده یا بی دانی .

تلی [د بوټ کښته خوا] یی د یوی پنډی څرمنی ځخه چی گومیښی



﴿استاد داد محمد بریځ﴾

څرمن یی نولی ور اچوی ددې کسب بیله بخیو ځخه چی په ماشین رغیږی نور ټوله کار یی په لاس سرته رسیږی

### د کار اندازه

دا ټکل له مخی په کندهار کی تقریباً په کال کی سل زره جوړی بوټونه جوړیږی چی اکثره پخپله په کندهار او یا نورو ولایتو کی خرڅیږی

### د بوټ بیه

د بوټ جوړولو او بیه له استاد او کاست تر پوهی علاوه د څرمنی په ډول او ځرنګوالی پوری هم اړه لری سلیپر له [۱۸۰] ځخه تر «۲۸۰» افغانیو پوری او نیم بوټی د «۱۷۰» ځخه تر «۲۸۰» افغانیو پوری بیه

لري د بوټ پېړه د فرمايش په وخت کي ټا کل کيږي او که فرمايش نه وي د را نيونکي ا و خرڅونکي په جوړه پوري اړه لري .

## د بوټ جوړولو

وسايل :

د بوټ جوړولو څرخ (ماشين) چکش يو ډول خاص غالب، برنده ، کنده ، مشته

نيره ، سندان ، يوه صافه ډبره ، غيچي او داسي نور دي .

## مشهور کاسبان:

د بوټ جوړولو کار دوي برخي لري چي هره برخه ئي استادي او زده کړه

غواړي لومړي د بوټ د مخ جوړولو کار (روي رساني) چي موږ يي په اصطلاح بادام رساني بولو او . وهمه برخه ئي

د تلي کار جي پخپله د بوټ سازي په نامه يا ديږي چي هريو يي جلا استادان لري د دې بوټ

لوړي رواجونکي په کندهار کي استاد غلام محي الدين فيض الله ماما استاد حاجي گل

او داسي نور دي په اوس حال کي دراغلو معلوماتو له مخي په بوټ سازانو کي

مشهوره کاسبان استاد حاجي گل محمد او استاد داد محمد [بريخ] او استاد حاجي شير محمد نامان دي

او په بادام رسانانو کي مشهور کاسب ئي استاد عصمت الله دي چي دوي ډېر ذوق او

کافي لياقت خاوندان دي چي موږ ئه د معرفي په لړ کي يو ازي د استاد داد محمد بريخ عکس په لاس راغلي او چاپ ته

مو وسپاره يوه خبره چي اوس په پای کي را پياد سو له هغه د کندهار په اصلي ساخت

بوټ کي د لرگيو ديو ډول خاص و تختو کارول دي چي د ا کار سره د دې چي ځيني خلک يي نه خوښوي بيا هم

د کندهار د خواري کښو او زيار ايستونکو خلکو د ذوق سره ډېر برابر دي

يعني ډېر کلک يا د دوي په اصطلاح (اندام داره) وي دا وو د کندهار د بوټ جوړولو په باره کي زما لږ معلومات .

[ښاغلی فدا محمد]

## د لوړيانو خبري

خواري او بد بختي:

د خوارۍ او بد بختي په وخت کي سړی خپل حقيقي دوستان پېژني . [بلزاک]

خواري او ناداري د سړي فکر ته تربيه ور کوي .

[ويکتور هوگو]

که کيدلای ما به دعا کولای چي په زحمت او ربړا خته شم څو په آخر کي مي ډېر راحت په نصيب شي .

[يونيان]

داسي کسان شته چي ئي غفلت کوي او سبا خپله خواري د آسمان او يا زماني د کاږه ر فتار څخه بولي .

[بي ير لورو]

د بشر ټوله بد بختي د طبقاتي امتيازاتو څخه پيدا کيږي .

[بي ير لورو]

څوک چي بد بختي و نه پېژني د ښادي په لاس راوستلو او د هغه په ساتلو هم نه پوهيږي .

[داويد وايت]

د مصيبت پر وخت ژړا داسي مثال لري لکه پر شاړه مځکه چي باران واوري .

[فرانسوا کوپه]

سردار محمد [زهیر]

# دملګرو پیاد

د کندهار په تاریخی ښار کی د پخوا زمانو څخه تراوسه علم و ادب، فضیلت، شجاعت، کمال وهنر په لوړه پیمانه لیدل کیږی چی ډیر لوړ عالمان، ادیبان، فاضلان، او مجاهدین دی خاوری روزلی او ټولنی ته یی وړاندی کړیدی .

په اوسنی عصر کی هم ښه ښه لیکوال د لوړ فکر او پخی تجربی خاوندان په کندهار کی سته چی له هغو څخه یو محترم فاضل ښاغلی حاجی حبیب الله [سرپاس] دی چی د ډیر و وختو څخه زموږ سره قلمی همکاری کوی .

دی یو باد یانته ، صادق او د قلم خاوند دی چی زیاتره اجتماعی ، ادبی ، او علمی مضامین یی تاسو په کندهار مجله، طلوع افغان او نورو ورځپاڼو کی لوستی وی

دا دی د ده لنډه سوانح چی ښاغلی [زهیر] راوستلی ده خپرو او هیله کوو چی ښاغلی سرپاس زموږ سره خپلی همکاری ته نور هم دوام ورکړی .

«اداره»

ښاغلی الحاج حبیب الله [سرپاس] چی ددوی د پلار نوم مرحوم عبدالرحمن او نیکه یی محمد غیاث نومیدی په خته [بارکزی] دی .

ددوی د پلار و نیکه اصلی مېنه د ارغستان د [کڅی] کلی ؤ چی د هغه ځای څخه د لوی احمدشاه بابا په زمانه

کی خواجه علی بابا نه راغلی او له هغه ځای څخه د ښاغلی سرپاس پلار د کندهار ښار ته راانقل شویدی .

خو څو عمر و روسته د ښاغلی سرپاس مرحوم پلار کابل ته تللی ځکه چی په شاهی ګارډ کی منصبدار ؤ .



ښاغلی حاجی حبیب الله (سرپاس)

ښاغلی سرپاس په ۱۲۴۸ شمسی کال هوری په کابل کی وزوکیدی او په ۱۲۹۶ کال کی بیرته کندهار ته راغی چی ښاغلی سرپاس تر اوسه په کندهار کښی اوسیږی

ښاغلی الحاج حبیب الله خپل تخلص سرپاس ټاکلی دی دا سرپاس په اصلی کی

د بارك نیکه په زامنو کی د یوه زوی نوم ؤ چی دوی د هغه د اولادی څخه دی .

سرپاس چی اصلی معنی

یې په [سرلوړی] راځی دغه نوم د خورشید جهان په تاریخ اود ۱۳۱۴ کال د کابل دسالنامې د بارکزو په سلسله کې د [سرباز] په لفظ سره راغلی دی.

چې دغه د سرباز نوم بیا په وطن کې په [سرپاڼی] سره اوښتی دی چې ښاغلی الحاج اود دوی نور وروڼو ښاغلي، حاجی نصرالله او

حاجی عبدالله او ښاغلی فیض الله تر ډیره وخته خپل فامیلی نوم دغه سرپاڼی یاداوه او اوس یې پېرته په

سرپاس اړولی دی خوداچی د ښاغلی سرپاس لوی نیکه مرحوم ملامحمد اکرم اخوند دلوی احمدشاه بابا د دربار یو دینی او علمی او مذهبی مشاور او د کام مشرؤ.

لدې څخه دامعلومیږی چې د دوی کورنی یوه علمی او عرفانی کورنی وه.

ښاغلی سرپاس چې اوس د ۶۴ کالو او د دروزامنو ۲ لوڼو او ۱۵ لمسیانو خاوند دی.

د ۶۴ کالو راهیسته د پښتو ادبی محیط ته رالویدلی دی.

دوی خپل لومړنی تعلیمات د کندهار په ښوونځی کی سرته رسولی او متوسط تعلیمات یې په حربی ښوونځی کې پرپربښه درولی دی

په متداوله علومو کښی هم تر یوې اندازې پورې مهارت او په تصوفو کی هم یوه برخه لری.

له ۱۳۰۵ کالو څخه بیا تر ۱۳۳۶ سنې پورې ئې د حکومت په مختلفو اداروکی کار و نه کړی او په دغه زمانه کی د یوه کال د پاره معلم هم ؤ او بیا یې له ۱۳۲۷ کال څخه

تر ۱۳۴۰ پورې تجارت او په دغه ترڅ کی یې د رملتون هم را ایستلی ؤ اوس د ستې کوم کار نه کوی.

ښاغلی سرپاس چې د کندهار د مجلې یو ټینګ ملګری دی چې د دوی مضامین تل مدام د کندهار په مجله کی کورو او د کابل په انیس او اصلاح کی هم د دوی مضامین لیده کیږی.

دی نه یوازی د پښتو د ادب یو تکړه لیکوال بلکه په دری ژبه هم ښې ښې مقالې لیکی.

ښاغلی سرپاس په داسی حال کی چې د وطن درد تل ورسره دی د یوه ښه ضمیر او پاک وجدان څښتن او د ښو افکارو او نظریاتو خاوند دی، د ده ته چې یو علمی او

فلسفی و منطقی بحث او مجلس وروور سیږی نور نو په هیڅ شی پسی نه ګرځی.

د قضاوت او حکمیت جنبه ئې خورا تکړه په یوه موضوع کی تر هغو څوچې په یوه دلیل او منطق دده قناعت حاصل

نه سی حکمیت او قضاوت نه پرکوی.

دی وایی زه یو تنقید هغه وخت صالح تنقید بولم

چې د هغه د اصلاح او علاج لار هم ښودل شوی وی یعنی تنقید او نظریه دی دواړه سره اخښلی وی ښاغلی سرپاس

چې په خپله یو سوچه او سپڅلی پښتون دی څو ک چې په رشتیا او صداقت کار کوی هغه خورا پر ګران او له

د ورنګ سړی څخه ئې خورا ترهه کیږی ښاغلی سرپاس د خپل هیواد تقریباً ټوله ولایتونه لیدلی او کتلی هند او پاکستان ته هم په سفر تللی دی.

د حج اداینې په غرض خو ئې عربستان هم غوښتی دی ښاغلی سرپاس د ریاضی یو کتاب تر الجبره پورې مسوده کړی او د مقالو یوه

مجموعه ئې هم غونډه کړی او يو بل کتاب ئې د تقويم استخراج په نامه هم سره راټول کړی دی.
ښاغلی سرپاس که څه هم شعر نه وائي خو داسې معلوميږی چې د ښو اشعارو سره زياته علاقه لري او که وغواړی ښه شعر ويلای شي.
د دوی د شعر و د وی نمونی چې يو په پښتو او بله يې په دری ده په لاندې ډول ئې وګوری:

څوچې غوټۍ وی ګل په پاڼو کې دوام لري
د بلبلانو له آوازه غوږ آرام لري
چې پاڼو پورته کې له خو به څخه لاس د قضا
پاڼې تر پری کې په منګو لوتش ګل نام لري

بلبل ته ګوره څو بيده وی پر بستر د عدم
څه غم ئې نه وی نه الحان او نه اعلام لري
د تعشق په مينه راسی د چمن ولور ته
قفس کې ولويږی پدی چې ښه کلام لري

دوبی ته ګوره چې هر باغ وی د ميو و څخه ډک
يخی سايې داشنی باغچی ګلان اقسام لري
اوس بيا و ګوره چې خزان راغلی دی په قوت
باغونه لوټ سو له قاصد ديخ پيام لري

د طبيعت د اتقاضا ده لوی حکمت دی د رب
کله بهار کله خزان کله ماښام لري
نيکمرغی بوله چې يې سپک وی د دنيا بارونه
«سرپاسه» څکه دا دنيا اشکال ارقام لري

## نعت

ديشب بجزاز روی تو ديدار نديدم
بر روی زمين سايهٔ ديوار نديدم

✡✡ ✡ ✡✡

خورشيد جهان نور محمد [ص] بسما شد
در نزد خدا جز قد دلدار نديدم

✡✡ ✡ ✡✡

ما عاشق و مستيم زاسرار مپرسيد
قدر يکه نمودند دگر بار نديدم

هر چند نظر برسر افلاک نمودم
جز خاک درش سرمهٔ ابصار ندیدم

✡✡ ✡ ✡✡

شیران ودلیران همه درمعرکه بودند
در دشت ودمن جز قدم یار ندیدم

✡✡ ✡ ✡✡

در حفظ وطن جان دلیران بکفن شد
در مملکت افغان خط انکار ندیدم

✡✡ ✡ ✡✡

با خاک ووطن صدق وصفائی صفت ماست
درراه وفا مثل خود هوشیار ندیدم

✡✡ ✡ ✡✡

هم مشرب وهم مذهب وهم دین همه ما ایم
در زاویهٔ چشم وطن خار ندیدم

✡✡ ✡ ✡✡

یارب بکرم این وطن ازغیر نگاه دار
در مرحمت تو شک و انکار ندیدم

✡✡ ✡ ✡✡

[سرپاس] اگر به خلد رسیدی عجبی نیست
در دفتر فضلش رقم نار ندیدم

---

## څلوریځه

دهغودی دژوند چاری سی ویجاړی
چی دخپل ټبر اوملک بده بهغواړی
پښتانه وای - دقام بده [لوخو] غوښته
ځکه اوس دی پر اوبو وچی ولاړی
(ویران)

دښاغلي [سرېن] تتبع او غونډونه

# د کندهار هغه نادره شعراء چې د زمانې په مختلفو ادوارو کې تیر شوي دي

څنګه چې ما شخصاً معلومات کړي دي ډېر ګومان کیږي چې دده دزې، عربي او پښتو دیوانونه دي دښاغلي عبدالعزیزخان دامانیه دحکومت دپخواني داخله او حربیه وزیر په لاس کښي وي.
دلته ترکومه ځایه پوري چې اشعار ئې دخلکو په خولو کې پاتي شوي دي را نقلوو.

پـه عالم کـي ګډ خپر دي د قران
په هر کور کي شور وشور دي دقران
ډال ډول دعباسي دي په هر کور کي
طمطراق ئې کـړو پـردې دقران
که زاهد د زماني درسره مل وي
ستا ولاس تـه ئې نظـر دي دقران
که تجار که زمین دار دي که کاتب دي
که سردار هر یو نـوکـر دي دقران
که سوټي وي اردلي ئې ځـي دمخه
چـي صاحب دي معتبر دي دقران

********

منقلب شوي ددنیا تـمامـي چاري
شوې خرابي چې لیدې مو په هغه لاري
عـربـي اسان ماڼه نه دي په لوخو
نی شکر بادام وهـي څوي دحماري
بلبلان طوطیان حیران پر صحرا ګرځي
کارګان ټوله پر ګلزارو هي چغاري
نادان ناست بې غمه عیش کوي آمره
دا خواري دي مبتلا په سل دشواري

نوټ: ددې شاعر سوانح ښاغلي ځلمي ماته را کړې ده تشکر ځني کومه

# ملا محمد اسلم اخند کندهاری :

ملامحمد اسلم اخوند دملا دین محمد اخند زوی په کام لوڼ دکندهار له هغو شعراؤ څخه وچې په دری او پښتو یې شعر ویلای شوای اشعار ئې اکثر آعشقي او تصوفي دي چې په دری کښې دخواجه شیراز په پښتو کې درحمن بابا سبک لري دزو کړی ځای ئې دباميزو کوڅه وه مګر دمړینې نېټه ئې ندهراته معلومه عمر یې خلکو ۶۵ کلونو ته قریبدی

دوه دیوانه ئې چې یو په پښتو او بل په دری دی هتبتعر ادیب په لاس ورغلی دی ښایی چې یو وخت به ئې خپاره او ودې ګمنامه شاعر نوم به دابدلپاره ژوندی کی اوس ئې دادې دوی دری منظومی دکلام دنمونی په ډول ولولی :

هزار گفت سمن درچمن شمیده کجا — صدای شعر شدوگوش من شنیده کجا
دلم چوشیشه به میخانه موج مرگ زده — که مست بسمل تیغست خون طپیده کجا
چراغ انجمن انجم چمن شب روز — عرق زاتش لب هست و گل چکیده کجا

ز دیده خواب پرید وفلاخن سنگست — خیال مثل غـزال شب رمیده کجا
جمال یارچو درموج میزند شب روز — کشند ز بحر گهر هر غواص دیده کجا
بزندگی نتوان یافت وصل بیداری — زخواب پیش خیالست روح پریده کجا

چه سوز شوق جنون در دلم شود اسلم
شر رزشیشهٔ پرید وبمن رسیده کجا

دملامحمد اسلم اخند دکلام دوهمه نمونه :

---

شمس است شمع بیش رخت جمع از حیا — در محفل شعار گل ای شوخ تر بیا
لعلت چو موج خونزدهٔ درج عقیق را — در شیشهٔ شراب بـود جـو شش زیا

تصویر خانهٔ صنمان زیر کلک کیست — نقش به مثل پیکر دیگر زدی آیا؟
چالاک وچست چست فلک چشم شمس گیر — دل می برد به یك نظر این حسن بی ریا

ریش صنم چو برتن عاشق کند گلیم — در بر بگیر مهرخ وبر فرش بوریا
پروانه عشق شمع پریخانه ساخت است
اسلم بسوخت حسن در ین بتکده بیا

# غلام محمد خان طرزی

☼ دا ددری شعر استاد سردار احمد خان زوی دی چی په ۱۳۴۵ هجری قمری سنه کی د کندهار دادب روزونکی ښهر په یوه جلیل القدره

کورنی کی زیږېدلی دی په ابتدا ئې معلومات کی د پلار او په ادبیاتو کی د خپل پوه اکا سردار مهردل خان (مشرقي) شاګردۍ د خپل فطری قابلیت او خداداده استعداد اثر ئې ؤ چی ډېر ژر ئې په علمی فضیلت سره دامیر دوست محمد خان امیر محمد اعظم خان او امیر محمد افضل خان په دربار کی ډېر تقرب پیدا کی.

مګر دامیر عبدالرحمن خان په عصر کښی وروسته تردرې میاشتی بند هند ته فرار کړل سو په ۱۳۰۳ هجری قمری سنه کی بغداد ته او په ۱۳۰۴ هجری قمری سنه کی وحج ته ولاړی

پدې وخت کی ئې یو کتاب د اخلاق حمیدی په نامه چی نوم ئې د سلطان عبدالحمید خان غازی د آرکو ټولو اثارو ته منسوب ؤ تصنیف کی طرزی صاحب د نظم او نثر په دواړو فنو نو کښی استاد ؤ

په هر رنګه نظم کښی ئې خپله استادی ښکاره کولای شوای یو دیوان ئې د کلیات طرزی په نامه سره په ۱۳۱۸ هجری قمری سنه کی په کراچی کی طبع شوی دی چی تقریبآ څلوېښت زره بیته لری د مړېنی نېټه ئې هم دغه د کتاب د طبع تاریخ و بولی.

بر ېښنا [بخر کی]

# د مصر مدنیت

مصر د افریقا په شمال شرق کی موقعیت لری او د نیل دریاب پدې مملکت کی د جنوب څخه د شمال وخواته بهېږی او ددغه رود پر غاړه پخوانی انسانانو یو ډېر عالی مدنیت ومنځ

ته راوستلی ؤ. چی د مصر د مدنیت په نامه شهرت لری هغه وخت چی انسانان د نیل وادی ته داخل سول. څرنګه چی ځمکه د کرهڼی د پاره ډېره مساعده وه. نو دوی هم د وحشی ژوند څخه

ویوه منظم ژوند ته متوجه شول او په زراعت ئې پیل و کی. په اوله کی قبیلوی ژوند درلودی. او په ډېرو ایالتو تقسیم شوی وه.

اما کرار کرار کښتنی ایالتو نه د لوی ایالتو دخوا فتح سوله. او په نتیجه کی دوه غټ

دولتو نه منځ ته راغلل. چی یو د پورته مصر دولت ؤ او بل ئې د کښته مصر دولت ؤ اما په آخیر کی د کښته مصر پاچاهان پر لوړ مصر باندی غالبه کېږی او یوی قوی او واحد حکومت منځ ته راولی.

د مصر پاچاهان په تاریخ کی د فرعون په نامه یادېږی. چی تقریبآ [۲۶] کورنی پر له پسی تللی او راغلی دی او دری زره کاله یی پر ټوله مصر باندی حکومت کړی دی.

ددوی پایتخت به کله تبس او کله به د منفس ښار ؤ د مصر مدنیت هم د نورو مدنیتو په شان کله فاتح او مفتوح وه دوی د تاریخ په جریان کی د مختلفو تهاجماتو سره مخامخ شوی وه

لکه هکسوسان، آثوریان، هخامنشان چې موږ ئې صرف په نامه سره قناعت کوو او مفصله تشریح ئې زموږ د تاریخي موضوع څخه بهر ده.

اوس موږ صرف د مصریانو خدمتونه و بشریت ته بیانوو: کله چې مصریان په مصر کې مقیم شول دیوه نوې

زراعت اساس ئې کېښود او نوې زراعتي آلات ئې لکه یوم، جوغ، او بعضې نور وسائل ئې اختراع کړل

همدارنګه دوې منظمې والې او کاریزونه و کیندل او دوچو مځکو د پاره ئې هم کانالونه و کیندل مصریانو هم په اوله کې د طبعي عناصرو

پرستش کاوه او هرشي چې به ئې و دوې ته ګټه او یا تاوان در لودې د هغه د خوشحاله کولو لپاره ئې عبادت کاوه په هغه دورو او وختو کې د دوې مشهور مذهبي مشران رع د [لمر مشر] او وزیروس ئې [د نیل د دریاب مشر] او هم دارنګه فرعون ئې د راع د اولادې څخه باله

مصریانو د روح په باره کې داسې عقیده در لوده.

کله چې انسان مړ شي نو د ده روح او له پلا د غربي غرو و خوا ته ځي او هلته د رع په حضور کې خپل سوال او جواب ورکوي او وروسته تر

یو څو مودې بېرته و خپل جسم ته راګرځي نو دې مذهبي عقیدې پر اساس دوی د مقبرو په جوړولو کې ډېر کوښښ کاوه او د دغه قبرونه ئې د یوه مړي د پاره مکمل

اسباب تیارول. او همدارنګه ئې قبرونه ډېر غټ، غټ جوړول او په هغه کې ډېرې ښایستې نقاشي کولې په نتیجه کې په مصر کې

نقاشي، معماري، زرګري او د مومیائي کولو فن ډېر انکشاف وکې او تر اوسه پورې لاهم د

بعضې فرعونانو جسمونه پر خپل حال پاته دي او د دوې د قبرو څخه درې مشهور قبرونه چې د اهرام په نامه یادېږي تر اوسه پورې

موجود دي او د مصر د عجائباتو څخه شمېرل کېږي. غټ اهرام ئې [خوفو فاکس] نومېږي چې تقریباً [۵۰۰] فټه لوړوالي لري.

او دوه ملیونه خښتې او ډېرې پکښې کارسوې دي. مصریانو یو ډول خط چې د [هیروغلف] په نامه یادېږي کشف کې.

چې د دې ډول خط آثار تر اوسه لاهم د پاپیروس پر پاڼو پاندې سته. او د لو مړي ځل - د پاره د فرانسوي لرغون

پېژندونکي چه شا مپلیون نومیدې. د پاپیروس آثار ئې ولاس ته راوستل. او هیروغلف ئې ووایه او د مصریانو مدنیت ئې و موږ ته روښانه کړې.

## دلویانو وینا

هټلر چې د شلمې پېړۍ د تاریخ له قهرمانانو څخه دی د لوېو ژلې او بیا د خپل قدرت په وخت کې ئې درې واره ژړلي دي هغه وخت چې مور ئې مړه سوه.

هغه وخت چې المان جمهوري شو.

هغه وخت چې د المان د تسلیم په وخت کې ده ځان

واژه او دده یوافسر دې لذې کار منصرف کاوه.

(دغ زباړه)

د هنرمندو غیرو د معرفی په لړ کې:

# صایمه زموږ زیوه

## هنرمنده پیغله

له هغو پیغلو ځځه چې د ښځو په طبقه کې ئې ځوانه حوصله ثابته کړه [۳۳] کلنه هنرمنده پیغلـه صایمـه مقصودی ده.

دا پیغله اوس په یوه وخت کې درې پوله مهمې اجتماعي وظیفې په ډیرې کامیابۍ سرته رسوي دا له یوې خوا په کورنیو چارو

کې د خپل پلار مرستیاله ده له بلې خوا د راډیـو ئـې هنرمندي په حیث جامعه له ځان ناراضي ساتي او په عین حال کې د بو ځوان طاقت په حیث لوړو تحصیلاتو ته ځان چمتو کوي.

پدې ورځو کې د پیغلې صایمې مقصودي په خصوصي ژوند کې دوه مهم تحولات راغلي دي یو دا چې په

ازا نسري او دراماو یـې درامو دا ستانو او ډیالوګونو په تمثیل کې د برخې اړلو نه علاوه پدې لنډو څو ورځو کې دې ته موقع ورکړ سویده چې په راډیو



پیغله صایمه [مقصودی]

کې د ښځې د اتو بجو د مهمو خبرو په ویلو کې برخه واخلي.

بل تحول چې د دې په ژوند کې راغلی دی دا دی چې بکلوریا یې پاس کړېده او سبا ئې د کابل پوهنتون په کانکور کې ګډون کړیدی چې په داوطلبانه ډول یې نتیجو ته انتظار وباسي.

صایمه مقصودي د راډیو په زیاتو پروګرامونو لکه ډیالوګونو، شعر ویلو، انا نسري او نطاقي کې برخه اخلي خو هر ماښام چې د اد

خپلو نورو هنرمندو ملګرو سره په موټر کې د کور خوا ته روانیږي ستومانې نه لري بلکه په پوره حوصله او علاقه د خپلو ملګرو سره د هرې

سړي او هر ذوق سره برابرې خبرې کوي.

د صایمې پلار چې شاعر صوفي او د طریقت خلیفه دی د خپلې لور همدغه صفت یې ډېر خوښیږي لکه چې

ده وویل په ما خپل ټول ژامن او لوڼې ګرانې دي خو د صایمې عقل او اخلاق مې

ډیر خوښیږي مولینا شاه مقصود ګرم د خپلې لور د عقل او اخلاقو د تشریح کولو په ترڅ کې وویل:

زما لور صایمه دومره هوښیاره او عقلمنده نجلۍ ده چې د هر چا د سویې او ذوق سره برابرې خبرې کوي او د هرې سویې د خلکو په ټولنه کې بیګانه او پردۍ نه ښکاري په عین حال کې زما د لور اخلاق له دې امله د ټولو پردې چې دا په وړو او زړو ټولو ګرانه ده

په مقابل کې صایمه د خپل پلار له دې اخلاقي شجاعت څخه امتنان څرګندوي چې دې ته ئې د خپل ښه نظر له مخې

د اجتماعي او هنري روزنې له پاره زمینه برابره کړیده.

صایمه د خپل علم او عمر یوې داسې مرحلې ته رسیدلې ده چې اوس د ځان او خپلې

ټولنې په باره کې د نظریې ښکاره کولو صلاحیت لري په اجتماعي نظریاتو کښې په افغانیت عقیده لري خو افغانیت په لباس کې نه بلکه په اخلاقو کې غواړي.

د ځان په باره کښې یې سالمه نظریه داده چې دا تحصیلات تر واده مقدم بولي د مینې او عشق په باب د دې عقیده داده چې مینه باید هوسې نه وي.

د نیکمرغۍ او خوشحالۍ په باب د ۲۴ کلنۍ او بکلوریا پاسې پیغلې نظر دادی چې خوشحالي د انسان په نظر پورې اړه لري که انسان

ښکلې نظر ولري تل نیکمرغ او خوشحاله وي او که تل تیاره په نظر کې ساتي هغه د ژوند په خوشحالیو کښې بې برخې وي.

صایمه وایي چې احساس زما د هنر ډیر ښه لارښوونکی او استاد دی.

صایمه یوازې د راډیو مله او نطاقه نده بلکه د داد ستیج د مخ ننګره هنرمنده هم ده.

د قهرمانانو په ډرام کې دې د یوې غیرتمنې پښتنې رول لوبولی دی چې د دې

د کامیاب رول له امله ورته بخښښ هم ورکړ شویدی.

دا هنرمنده په کال ۱۳۴۴ کښې د اعلیحضرت معظم همایوني له حضوره

د راډیو په پیشنهاد د هنر په مډال سره مفتخر شویده چې د خپلو زیاتو افتخاراتو موجب یې ګڼي

صایمې په ۱۳۴۳ کال کښې د افغاني هنرمندانو سره یو ځای د ځینو ډرامو د اکټ کولو له پاره شوروي اتحاد ته تللې ده.

دغه هنرمنده نجلۍ په ۱۳۴۷ کال په واصل آباد کې په یوه روحاني کورنۍ کې زیږیدلې ده.

د صایمې په باب د یو لیکوال نظریه داده چې دا یوه خوشحاله او اجتماعي نجلۍ ده

(طلوع)

## د هنر په باره کې وائي

۞ هر هنر دوست باید لوړ او ډیر د هنر پېژندنې قدرت ولري او بايد په برخه کې ئې یو څه کوښښ کړي: ترڅو وکولای شي د ښکلو آثارو تشخیص وکړي او په هغو کې د قضاوت حق پیدا کړي.

[فلیسین شماله]

۞ طبیعت د هنر څخه تقلید کوي.

[اسکار وایلډ]

۞ هنرمند د هغه څه په یادولو سره چې نه ده ترمخه ئې انجام کړی دی او هغه څو ترده وروسته ئې انجاموی زده کړه کوي.

[ګابریل سی ای]

د عبدالهادی [ژباړه]

## غوره

تراوسه می څو ځایه دا خبره لوستلې ده چې وائي [اکتپوس] یعنې هغه حیوان چې په بحر کې اوسي او انسانانو ته ډېر ضرر رسوي.

هغه خلک چې دا لیکنې کوي یا دده له ضرره یې خبر دي یا کوم ځای دا حیوان نه پېژني.

دا حیوان چې ډېر دا وقیانوس په بحر کې اوسېږي دومره خطرناک دی چې د بحر ډېر لوی لوی حیوانات هم ځان ځني ژغوري.

هغه اته پښې والا حیوان چې په مدیترانه کې اوسي تر «۳» متره بالاندې وي او په اوقیانوس کې هم دا حیوان تر «۲۰» یا «۳۰» متره پورې موندل کېږي.

د اوقیانوسي د [سواحلو] په جزیرو کې دا حیوان ډېر لیدل کېږي او دې ځای «اکتپوس» خورا مضر او خطرناک دی لیکن په عین حال کې ډېر آشنا پرسته هم دی.

ما ددې ځای د یوه او باز څخه پوښتنه وکړه چې دا څنګه حیوان دی؟ دا سړی «تاپو» نومېږي

د هارونې ترجمه

# په اوقیانوس بحر کې یو مضر

## حیوان سته چه د انسان سره اموخته لري

او ډېر پس وکلر نې هودې حیوان سره دې یوه ورځ نې نکل وته کاوه چې دا حیوان د ونه مضر دی چې انسان سره مخامخ شي

فوراً حمله پر کوي کله یې یا ور سره آشنا شي او رفاقت ور سره پالي مثلاً زه دا اسې یو حیوان سره دوستي لرم

او دا اوری کاله کېږي چې سره پېژنو کله چې زه و بحر ته راشم او په هغه ځای چې پرده مې ایښې دی ورو ورځ کم نو دستي دا او بو سرته راسي او زما په لیدو ځینې حرکات کوي چې زه تې د دوستي نخښې بولم.

زه هم هره ورځ ده ته خوراکو نه راوړم او دی د صدف په لاس ته راوستلو کې ډېره مرسته راسره کوي زما او ددده د رفاقت وجه دا ده

کله چې ما و اوریدل چې دا حیوان اموخته کېږي او هم د صدف په لاسته راوستلو کې به مهارت لري نو د همدغه «اکتپوس» سره مې چې زه نې «پوپو» بولم شناخت وا چاوه او په عادي امو خته کړی دی د بحري د غټو چونګاښانو پر شوقي دی زه داسې غټ چونګاښ ور ته

برابروم تا پو په مهدې خبر و دعوت کړم چې زه دده رفیق «اکتپوس» پخپله سترګو ووینم نو په کښتۍ کې ورو ورو هی

شو او کله چې د «اکتپوس» سترګې پر «تاپو» ولګېدې په ډېره چټکې زموږ پر خوا راوخوځېدی خو ځې دده

پښې په حرکت کې وې او دوی پر ښکلو کې سترګې نې په مونږ کې ښخې کړې وې یوه عجیبه منظره وه دا حیوان

زموږ مخ ته راغی یوه پښه ئې
پوره کړه او کرار ئې زما
ملګری «تاپو» ته ورنژدې
«تاپو» هم فقط دده و پښې ته

لاس وروړ داسې کوا کې یو
روغبړ ؤ چې دده سره ئې
وکی، پدې وخت کې [تاپو]

د ګڅوړی څخه یو چونګاښ
راووکیښ او دغه حیوان یوه
پښه ور وغزوله او هغه ئې
خولې ته ورساوه ـ زما او باز

ملګری «تاپو» راته وویل
چې اوس غواړې چې دا
حیوان په قهر کم پدې ترتیب

چې تو له چونګاښان به بحر ته
په یوه پلا ور وغورځوم دده
ئې په نیولو وس نه رسیږی
نو هغه وخت به ئې د قهر ؤ غضب

په حالت کې وګینو دا به هم
یوه تماشه وی کله چې زما
لاربنوونکی او باز د ګڅوړی

څخه چونګاښان په یوه پلا
بحر ته وغورځول خو دا ئې
رفیق حیوان په پښو ونیول
پدې حال کې یو غټ اته پښی

درلودونکی حیوان هم پیدا
شو او زموږ پر اموخته حیوان
ئې حمله وکړه دغو بېتل چې
چونګاښ ځنی د لاسه کړی
دا واقعه پسر «تاپو» نه

ونه لګیده او دملا څخه ئې
خپل تېره خنجر را وکیښ
او پر دغه غټ حیوان ئې حمله
وکړه کله چه زما لاربنوونکی
ملګری «تاپو» پر حیوان

حمله کول د اکټپوس څخه
ور وغورځېدی او کښتی
نابېره ګړه شوه زه ئې هم

بحر ته ور وغورځولم داوخت
ددې غټ حیوان یوه پښه
پرما و پیچل شوه لیکن کله
چې زما شجاع ملګری په

ډېره دلاوری په جنګ
مشغول ؤ نو لږ آن بعد ئې د
خنجر په وار و «اکټپوس»

د پښو واچاوه او هغه غټه
پښه چې زما دوژلو د پاره
را باندی پیچل شوی وه
سسته شوه او زه ئې ایله کړم

داوخت ما یو څه د هوا ذخیره
چې درلوده په کار واچول
او د لاس و پښو په حرکت می

ځان ته نجات ورکی خو
د قیقی تر جنګ وروسته
دواړه سالم راووتلو که
ګورو چې د «تاپو» رفیق

حیوان د چونګاښانو په
خوړلو لګیا دی «تاپو» شکر
وکیښ دا چې خپل رفیق
«پوپو» ئې جوړ روغ ولید.

وروسته مو د هغه سوی
[اکټپوس] جسد و چې ته یووړ او
خلک به ئې تماشې ته راتلل دا
حیوان تقریباً [۱۰] متره و «تاپو»

راته وویل چې که ته نواځی زما
مرګ به حتمی وای ځکه ددې
حیوان څه فکر او قوه تا ته متوجه

وه او ما ته په تو له قوه را ایله نه ؤ
نو ځکه ما خپل کار و کولای شو
چې دی و وژنم .

# د هنر په باره کی

د لویانو خبری

✡ هنر د طبیعت څخه عبارت
دی چې انسان پر هغه اضافه
شوی دی .

[بیکن]

د هنر لوړ ترین هدف د
اجتماعی عواطفو او احساساتو
ایجاد دی .

[ګویو]

✡ هنر باید لوبی ته شباعت
لری یوازی د ظرافت معنویت
او پیچیدګی ئې ور باندی اضافه ده .

[فیلسین شماله]

[تپانډ]

د نیازی ژباړه:

دمیر منو د پاره

# خوب او ښکلا



خوب د ښکلا یو مؤثر عامل دی او څوک چې غواړی چټا په قیافه، بیدا ره سترگی روغ جسم او خوشحاله روح ولری، بنایی چې د خوب

وخت ته متوجه ، او باید په ۲۴ ساعته کی ۸ ساعته د آرام خوب د پاره بیل وخت وټاکی .

زیاتری میرمنی و خوب ته اهمیت نه ورکوی او په ډیره بی فکری د خوب وخت د تفریح او گرځیدو قربانی کوی فقط یو یا دوه ساعته

خوب کوی داسی ښځی چې ښه نی ژړه، بی نوره سترگی کاږی واړی بدن ئی وی

تعجب کوی څرنگه چې دا د تعجب وړ خبره نده او دغه حال بیله بدخوابی څخه بل شی ندی آرایش هغه وخت

کولای شی زیات اثر هغه چې یاست په رشتیا مو ښکلی کړی

چې خوشحاله ښه آرام بدن، او ښه صورت مووی او که نه وختی چې له ستړیا سترگی نه رپیږی نو پوه ر به څه وکړی نوای هغو میرمنو!

چې د شپی له خوا ډیری ویښی او لږ خو بونه کوی. د خپلی سلامتی سره دښمنی لری ، او ښکلا چې

زیاته موخوښه، او پدې باره کی زیار باسی له همدې لاری ئی پولوی لاس خرابوی .

میلمستیا او تفریح ښه ده، او هیڅوک لدې څخه منکر نه دی اما په داسی شرط چې اندازه ولری.

د مثال په توگه وختی چې صحت ښه نه وی څرنگه کیدلای شی

چې له میلمستیا، مجلس او شپی کښېنستلو څخه خوندوا خیستلای تاسی مطمئن اوسی چې په شپو شپو خوب نه کول به ډیر ژر تاسی

رنځوری او له پښو واچوی .

همدغه رنگه هغه میرمنی چې له نه خوب کولو څخه شاکی او په عذاب دی باید پدې باره کښی

ډیره توجه او فکر وکړی . داچی هره شپه سترگی په زوره پټوی ، او خوب هم

څخنی تللای وی یا د خوب راوستلو گولی خوری

نتیجه نه لری .خوب باید طبیعی او په آرامه وی .

زیاتره میرمنی د خوب په وخت کی داحسوی چه اعصاب ئی ناآرامه او بیله

کوم سببه د بیداری یو هیجان موجود وی .

دزیاترو ډاکترانو او متخصصینو په نظریه دغه هیجان د جسمی عدم فعالیت

له سببه دی یعنی بدن مو دومره ستړی او نا آرامه نه دی چې استراحت ذی وغواړی .

ددې د پاره چې ښه خوب درسي دورځې پیاده ګښت او څینې نور څلور ورزشونه چې ستړیا راولي وکړي اما دا هم په یاد ولري چې تراندازې زیات ستړي نه شي ځکه چې ډېره ستړیا هم بې خوبي را لې او تاوانې ده په دوبې دیخو شیدو او په ژمې د ګرمو شیدو چښل تر خوب د مخه ډېره فایده لري.

همدغه رنګه د خوب کوټه لپاره کالې هم مؤثر دي په دوبې هیڅکله ښه او تنګ کالې مه اغوندې، او څومره دوسه کېږي په آزاده او پراخه هوا کې بیده، او بیا له یوه نازک ټوکره پل شي پر ځان مه اچوې چې ډېر موګرم او په عذاب نه کړي تر خوب کولو د مخه په یخو اوبو لمبېدل هم د خوب راوستلو لپاره ډېره مرسته کوي لیکن د غه لمبېدل به په دوبې کې وي نه په ژمي او یخه هوا کښې. د خوب راوستلو ګولې د ډېرا کتر تر ویلو د مخه مه خورې ځکه که له ځانه وخوړل شي تر ټولو ئې تاوان ډېر ډېری.

که یو وخت د کوم مشکري او دوست سره مخامخ سو است چې ښه ئې الوتې، ستړي ستوماڼه او یا عصبي معلومېدي ژر ئې د خوب په باره کښې پوښتنه وکړي.

تاسې په هره ژبه چې کولای شوای پوه او تشویق ئې کړي چې د خوب په باره کې زیاته پاملرنه ولري.

ځکه چې د ښځو زیاتره عصبانیت او بې حوصلګي د خوب د کمښت نتیجه ده او هم پدې پوه شي چې خوب کول هغه وخت مؤثر واقع او تاسې ته ښکلا بخښي چې په سمه توګه عملي شي.

څینې میرمنې د خوب په وخت کې لاسونه او پښې سره پېچلې کنجلکې بیدېږي.

پدې توګه د خوب ټول وخت اعصاب په تکلیف، او کله چې ویښې سي په عوض ددې چې بیداره او آرامه وي کهاله او زهیره وي

د خوب په وخت کې ښایي چې حتماً لاسونه او پښې خلاص او آزادې وي داسې لکه اصلاً چې ئې لاس او پښه نه وي او هم کوښښ وکړي څو به د وسه پوره وي د هغو دروندوالی حس نه کړي اعصاب او نور غړي مو ډېر آرام پرېږدي.

او کله چې بیدېږي عشقي، پلیسي او نور هیجان راوستونکي داستانونه مه لولې.

د پوروړو، شخړو، او نورو ناآرامېو فکر مه وهی که چېرې کولای شې په دغه وخت کښې ټول فکرونه له ځانه لیرې کړې

پدې ترتیب سره به مو په ۲۴ ساعتو کې د ۸ ساعتو په خوب کولو د ځان ښکلا ساتلې او د آرایش په وخت کې به په ښه صورت کولای شې چې د خپلو د ښکلا په شیانو باندې زیات تر هغه چې یاست ځانونه ښه ښکلې او زیبا کړی.

---

## دریمه جامه

ښکلې نجلۍ، ددې لپاره چې د سند پرغاړه د ولې تر درختې لاندې د خپل محبوب د لیدو لپاره ولاړه شي، خپل دوه ورښمین کالې ئې اغوستي وه

وختی چې لمر ورو ورو لویده دغو دوو مینانو د زړه راز سره وایه.

یوار ښکلې نجلۍ ولاړه شوه او مخ یې د شرمه سور شو؛

ځکه پوهیده چې د دې دریمه جامه یعني د ولې د درختې سایه ئې له بدن څخه لیرې شوېده.

(د کارګرژباړه)

# دلیپ کمار

یا

# ټراژیډي قهرمان

دلیپ کمار هغه په زړه پوري هنري چهره ده چې اکثرو دوستانو د ده هنرمندي د سینما په پرده کې لیدلې او غوره کړې ده.

داپنځه څلوېښت کلنی نامتو لوبغاړی چې محمد یوسف نومېږي تقریباً شل کاله کېږي چې د هند د خلکو بلکه د اېشیا په ټولو هېوادو کې یو منل شوی او د هنر دستوري په شان د هندوستان په سینمائي آسمان کې ځلېږي چې اوس بین المللي شهرت لري.

دلیپ کمار په یو کال کې تقریباً یو یا دوه فلمونه په خپله سرمایه وړاندې کوي چې د فلم داستان او خپل د مقابل لوبې هنرمندان هم دی په خپله انتخابوي.

او فلم ئې په هندوستان کې هر کال د خلکو د رای په اساس د کال فلم ګڼل کېږي.

او دی هغه لوړ هنرمند دی چې تر اوسه په هند کې هیڅ یو هنرمند د ده هنري پایه شهرت نه لري د ده نامي فلمونه عبارت دي له [سنګدل] [انداز] [ترانه] [بابل] [اورن کټولا] [سنګرش او ګنګا جمنا عظیم فلم [آرزو] داغ چه د [ګنګا جمنا عظیم] هم د ده د پاره دونه شهرت غونډ کړ چې د اروپا [۱۴] هېوادو په اوله درجه سینماګانو کې د خلکو د زیاتې علاقې سره مخامخ شو

او د مسکو په سینمائي فیستوال او د چکوسلواکیه په سینمائي فیستوال کې هغه جایزه چې د سرو زرو د درختې جایزې په نامه یادېږي وګټل او د دلیپ کمار [مغل اعظم] هم د ده په هنري ژوند کې یو افتخار و.

لنډه ئې داچې دا لیدیا په سینمائي آسمان کې دلیپ کمار هغه ځلانده ستوری دی چې تل ځلېږي.



دلیپ کمار

د دلیپ کمار [رام او رشیام] آدمی سنګرش لیدر دده د هنري شهکارو څخه ګڼل کېږي.

د ټراژیډي قهرمان د ژړا هغه نومونه د دې نامتو او محبوب هنرمند د ژوند او مفاخرو څخه ګڼل کېږي.

داهم باید وویل شي چې دده فلمونه ټول استثنا ئې دي چې لوی اجتماعي انتباهي شکل لري او د خلکو د ډېر استقبال سبب ګرزي.

نو موړي هنرمند پنځه کاله کېږي چې د ښکلې هنرمندې «سایره بانو» سره ګډ ژوند لري چې دیوه وړوکي زوی په درلو دلو سره د دوی هنري ژوند ته ښه خوند او رونق ورکوي. د ظاهره [هاله] او باده



## د لطفي د منفلوطي

له «العبرات او مي عربي کتاب څخه»

د ښاغلي نجيب ترجمه

د مصطفی لطفي منفلوطي «۱۸۷۶-۱۹۲۴» په آثارو کې چې د عربو ټولي ادیب او ستر لیکوالي ئې د النظرات او العبرات کتابونه ډېر مشهور دي دې د مصر د نهضت لومړی علم بردار د ښکلو مضامینو په لیکلو کښې ډېر شهرت درلودی او په علمي محافلو کښې ئې د قلمي قدرت ډېر تقدیر کېدی .

# یتیم

زمونږ له کوره سره په یوه لوړه بالا خانه کې د نونسو یا شلو کالو پر سن یو ښکلی ځلمی اوسېدی زما په ګومان سره د مصر په یوه عالي یا منځني ښوونځي کښې به شاګرد ؤ ولې چې د کوټې په کنج کښې به تل د ډېوې ته نیژدې د کتاب په لیکلو ، مطالعه او یا یادولو بخت معلومېدی ژېړ مخ بېر وور ښتانو او کمزوري بدن ئې دې ډېر ربړ د تحمل او یا کوم باطني رنځ ار او نمایندګي کوله د نه تعلق ار او په نسبت سره نه پوهېدم چې څه آرزوګاني په غمجن زړه کښې لري او یا د زمانې د حوادثو سیلاب په کومو سره ګرداب کښې ګیر کړی دی د ژمي په یوه شپه کې چې د کوم کار له پاره د مطالعې واطاق ته تللی وم ناڅاپه مې له کړکۍ څخه پر هغه ځلمي سترګې ولګېدې چې وڅراغ ته نیژدې ئې سر پر کتابچه ایښی بېخوده پروت دی له ځانه سره مې وویل څه وسوه ډېرې مطالعې به ستړی کړی وي چې خوب غلبه پر کړې او کېدې نه ئې د تللو موقع نه ده پیدا کړې زه لا په همدغه فکر کښې ډوب وم چې په ډېره وارخطائي ئې کوډال سر را پورته کړ او یو سوړ اسوېلی ئې وکیښ کتابونه او کتابچې ئې په اوښکو داسې لندې شوې وې چې تا به ویل چا و به پر پاشلې دي سره لدې چې لیکلي کاغذونه ئې خراب شوي او توري ئې سره ګډوډ شوي وه خو بیا ئې هم قلم را واخیستی او بخپلو لیکلو ئې پیل وکړ

ددې توری شپې په چپ-
چپایی کښې ددې بېوزلې
غریب دغه پریشانه وضعیت
ډېر خفه کړم په دغه سره کوټه
کښې چې دوره او کړکېو
هیندارې ئې هم ماتې وې

نه ئې شړې درلوده چې پر ځان
ئې واچوی او نه ئې په نغری
کښې اور چې وتاو ته ئې
کښېنې ما له ځانه سره وویل
دا بېچاره د مخه د عمر دغه و

او سختیو د کړاو تر رسېدو
دړونه په تکلیف او مصیبتو
اخته شویدی نه کوم داسې
خواخوږی لری چې په دغسې
مصیبت کښې خوله په وچه
شی او نه ئې کوم داسې صمیمی

ملګری شته چې ودغه
کمواکی نامراده انسان ته
چې زړه ئې د پوښتیو په منځ
کښې ویلې کیږی او د وجود
عمارت ئې د بېخ ختلی دیوال

په ډول سره مخ پر انهدام
دی د مرستې لاس اوږد وغځوی
زه لا هم هغسې پر دغه
ځای ولاړ او په دغه چرت
کښې ډوب وم چې هغه بېوزلې

کتاب ټپ کړ ولاړه شو او د
کټ خواته ولاړه ماهم د
خوب د کوټې و خواته حرکت
وکړ دشپې ډېره حصه تېره

شوی وه او سهار را نېژدې و پسله
دې شپې څخه می دا نوری شپې
هم کله کله لیدی چې ګاهې

ئې ژړل او کاهې به ئې سر پر
زنګانه ایښی او د فکر په سمندر

کښې به لاهو و کله به ئې بیاد
بورکی مور په ډول سره په بستر
کښې اوږد - اوږد ژګیروی کاوه
او یا به لېونی لېونی د خونی له یوه
سر څخه بیا تر بله سره پورې چکړ

چکړ تی او راتی په دیوالو به ئې
منګولې لګولې چې ښه په ستړی
شو نو له ډېرو سوګیو څخه به ئې
آواز ټپ و درېدی پر چوکۍ به

کېښېنستی او پښې به ئې اوږدې دې
وغزولې دده دې مضطرب وضعیت
زه هغو مره متأثر کړم چې زړه
می له ډېری خواشینی څخه نژدې و
چې وچاودی او له سترګو څخه می

اوښکې دولو په شان بهېدلې
ولی به نه بهېدلې خو دیوه مظلوم
انسان دردوناکه منظره ئې لېدله
یو وار به می ویل ورشه د یوه

مهربانه دوست په شان ئې پر سر
لاس تېر که د زړه حال ځنې
وپوښته ورته وو ایه ځلمی جانه
ولی داسې غمجن او ناقراره ئې؟

بیا به می ویل لېونی شوی یې
دچا په پټ راز دی څه غرض دی
هغه به ئې د خپلې سینې په صندوق

کښې پټ ساتی او اظهار اول
به ئې مصلحت نه ګڼی هغه
بلې شپې ئې په کوټه کښې سره
سفا او تیاره وه ما له ځانه
سره وویل څه وسوه ښایی
چې بهرته به تللی وی مګر

ناڅاپه می یوه اوږده کمزوره
ژګیروی تر غوږ سو ډېر
وارخطا شوم ټینګک یقین
می شو چې ځلمی خورا
ناروغه او په خوا کښې ئې

کوم رښتین خواخوږی نشته
حالت ئې لکه چې ډېر خطرناکه
دی سمدستی زه ورو کړ په
ډېر تلوار سره ډوب وه په لاس

کې دهغه و کوټې ته داخل
شوو دېوې په رڼا سره تې
خماری سترګی رونې کړې
او په ډېر حیرت و افسوس سره

زما و خواته راوا ړولې ما
دهیڅی و شفقت لاس ده په
ښکلی مخ تېر کړ او په ډېر
اخلاص سره می د بشری عاطفې
له مخې ورته وویل (جانه)

زه ستا د دغه کور همسایه
یم راغلی یم چې په غم دی
شریك او له خپله بشری وسه
سره سم کومه مرسته درسره
وکړم خدای دې وی چې ستا
غمجن ژګیروی می د زړه
مراندی پری کړی ځلمی چې

زما دمیني هغه وینا وورېدله
حوصله ئې زیاته شوه زما

لاس ئې پسر خپل تندي
کېښود وی اود حال په ژبه ئې
پوه کړم چې تبه مې ده قسم دی

چې په تندي ئې زما لاس وسو
او را ته معلومه شوه چې هغه پري
سختي محرقي تبې نیولې

دی وجود ئې هغه پر کمواک
او په ارت قمیص کښې دسر

پری کړی چرګک په خیر
سره پور ته، پورته غورځېدی
زما په خوځا ځکو د واځځولو
سره لږ څه پر هوښ راغی او

په یوه خواږه نظر ئې راته
وکتل دوچو چاودلو شونډو نو
په کرار - کرار خوځولو سره
ئې وویل تشکر په ډېره

خوشحالي سره مې پوښتنه
ځني وکړه وروره ! تا ته
څه تکلیف پېښ دی؟ په ښکلو

خمارو سترګو کښې غوټې
غوټې اوښکې د مرغلرو په شان

ولغړېدې په ډېر د ډېلسي
آواز ئې راته وویل په ځان
نه پوهېږم ما ورته وویل
که ستا اجازه وي کوم طبیب

به در ته راولم ژړغوني شو
په غونېږي ئې وویل طبیب
د هغه چا په کار دي چې ژوند

خوښوي سمدسي ئې لاړ وینا
سره ستر ګې پوټې شوی او د
بېهوښي څپه پر راغله د طبیب
راوستنګ ضروري شو که څه هم

زه سختي اوبي عاطفي طبیب په
دغه تور شپه کښې نه غوښته چې
د یوه بېوزلي وکتنه راشي خوما
په ډېر وزاریو سره په یوه چل د
چلو راوستی پسله نبض له معاینې
څخه ئې کرار په غوږ کښې راته
وویل د ناروغه خوار حال ډېر
سخت دی او زما په عقیده سره د
ژوند امېد ورته نسته مګر سره
له هغه به هم زه د انسخه در ته
ولیکم :

بلی! ماده پرسته طبیبان تل
د خپلو دوا پلورلو په ملحوظ د
ناروغانو د ژوند تکیس اخلي
خو په هر حال طبیب مې پسله
فیس د تأ دیې څخه رخصت او
سمدستي مې د نسخې لیکلې دوا
تهیه کړه تو له شپه مې باڼو پر
باڼو کښې نه ښووې وکتنه ئې د ی
هک پک ناست وم کله به مې
د اروور کول او ګاهې به مې
پر پرېشانه حالت او د ژوند پر
نامرادیو باندي غوټې، غوټې د حسرت
اوښکې تویولې سهار ته نیژدې
زلمي پر هوښ راغی یوې خوا
او بلې خوا ته ئې ښکلې ستر ګې
ولغړولې زه یې ولیدم د سر
په اشاره یې را ته وویل ته لا دلې
یې؟ ما ورته وویل چې هو !

پوښتنه مې ځنې وکړه
تر براپي خواوس لږ څه ښه
معلوم مېږې؟ راته وي وویل
پاک څښتن دې ستا پر خوله
آمین کړی او د دا دونه
تکلیفو اجر دې په دنیا او
آخرت کښې در کړي ما ور ته
وویل وروره ته څوک یې؟
څو عمر کېږي چې پدې ځای
کښې اوسې؟ نه ده راته
معلومه چې مسافر یې او که
ددې ملک اصلي اوسېدونکی
یې؟ صرف دغه ظاهري
تکلیف مضطرب کړی یې او
که کومه بله سخته صدمه
له کومې بلې خوا در سېدلې
ده ؟

په جواب کښې راته وویل
که مې ریښتیا پوښتې دواړه
تکلیفونه راته متوجه دي
ما ورته وویل وروره جانه د
خپل زړه حال د خوا خوږي
دوست په څېر سره پوره راته
ووایه هغه راته وویل ګرانه
غمخوره اشنا زه پدې دوو
شرطو سره خپل د زړه حال
در ته بیانولای شم یو داچې
که بالفرض ژوندی پاته شوم
زما قصه په منځ کښې به
وېلې راز پټ وي او که احیاناً
مړ شوم نو یو وصیت چې در ته
کوم یې ا ر ځای کوی به یې .

(نور بیا)

# ښځه او ادب

د ګویټه له اشعارو څخه

## مینې ته

هغه وخت چې د لمر وړانګې داوبو پر مخ باندې ځلیږي په دې وخت کې مې ستا سپین مخ وسترګو ته جګ ودریږي .

هغه وخت چې سپوږمۍ په خپلو زرینو پلوشو سره د سیند څپې ستوري کولې په دې وخت کښې مې ستا سپین مخ وسترګو ته جګ ودریږي

هغه وخت چې لا ډیره لیرې واټنه څخه ګرزي او غبار جګ شي ته زما سترګو ته جګ ودریږي .

په تاریکه شپو کې چې د غرو په سختو لارو کې د پردیسانو ساړه کیږي زه ستا د شفقت آواز اورم د شپې په سره سنا او دیپا بان په چپ چپائي کې ما ته ستا د نغمو زړه وړونکی آواز راځي .

ته ای په یقین ومنه چې سره له هر څومره لیرې والی ته زما سره او زه ستا سره یم .

په داسې حال کې چې لمر لویږي او ستوري ځلیږي کشکې ته راسره وای .

دع - ن - ژباړه



د مځکې د سروې او احصائیې رئیس ښاغلی
نعمت الله د کاډستر د ښوونځي د ۱۲ ټولګي
د پنځمې دورې یوه شاګرد ته د برې لیک
ورکولو په حال کې لیدل کیږي



د مځکې د سروې او احصائیې د ریاست مرستیال ښاغلی غلام سخي
«عثمان زاده» په هغه مجلس کې چې د کاډستر د ۱۲ ټولګي
د پنځمې دورې فارغانو ته د برې لیکونو ورکولو په باب
جوړ شوی وُ د بیانیې د ورکولو په حال کې